

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېواد به تل ځلېږي
په سينه کې د آسيا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پاميريان، نورستانيان
هم ايماق، هم پشه يان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاويدان
وايو الله اکبر وايو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




د پوهنې وزارت

# د رسامۍ هنر

## دریم ټولگی

د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ . ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** د رسامۍ هنر

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د هنر برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارټمنت غړي

**ټولګی:** دریم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۷ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:** بهیر مطبعه

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزير پيغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او ليک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پيغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پيغام ورته (لوستل) و، درود وايو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمريز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونيز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدينو شوراګانې د هېواد د پوهنيز نظام شپږګوني بنسټيز عناصر بلل کيږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختيا او پرمختيا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونيز نظام کې د ودې او پراختيا په لور بنسټيزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونيز نصاب اصلاح او پراختيا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړيتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځيو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونيزو تأسيساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کيفيت او توزيع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور يو، چې د باکيفيته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنيو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونيز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مديرانو څخه په درناوي هيله کوم، چې د هېواد بچيانو ته دې د درسي کتابونو په تدريس، او د محتوا په لېږدولو کې، هيڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د يوه فعال او په ديني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زيار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤوليت په درک سره، په دې نيت لوست پيل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د يوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځيرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدريس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونيز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په ليکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بريا غواړم.

د معياري او پرمختللي ښوونيز نظام او د داسې ودان افغانستان په هيله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزير

دکتور محمد ميرويس بلخي

# لړلیک

سرلیك — مخ

سرليک | مخ



دويمه برخه:

له ٦۱ څخه تر ٦۷ مخ پورې د ښوونکي لارښود پورې اړه لري.

# د گل رسمول

**موخه**: زده‌کوونکي به گل رسم او رنگه کړای شي.



**پوښتنه**

**۱- په لاندې رسم کې څه وینئ؟**



۳




**درکړل شوي رسم ته په پاملرنې سره ګل په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړئ.**



۲



۱




**زده کوونکي دې ورکړل شوي شکل ته په پاملرنې سره، ګل په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړي.**

# آلوبالو

**موخه:** زده‌کوونکي به آلوبالو رسم او رنګه کړای شي.



**پوښتنه**

۱- په لاندې رسم کې څه وینئ؟



۲




زده‌کوونکي دې د آلوبالو رسم ته په ځېر سره وګوري، بهرني خطونه دې د شکل له مخې رسم او رنګه کړي.



۱




زده کوونکي دې پورتنی شکل په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړي.

# د کتاب رسم

موخه: زده‌کوونکي به وکولای شي کتاب رسم او رنگه کړای شي.



پوښتنه

۱-کله مو د کتاب رسم لیدلی دی؟



۳




زده‌کوونکي دې د کتاب رسم ته په ځېر وګوري، هغه دې په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړي.



۱



۲




زده کوونکي دې د کتاب رسم ته پاملرنه وکړي، د هغه پړاوونه دې په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړي.

# د منظمو شکلونو رسمول

موخه: زده‌کوونکي به وکولای شي شکلونه رسم او رنګه کړي.



**پوښتنه**

۱- کله مو لاندې شکلونه لیدلي دي؟








**زده کوونکي دې لاندې شکلونه رسم او رنګه کړي.**


۲


۱




**زده کوونکي دې د (۱-۲) شکل په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړي.**

# د ناک او د انګورو رسم

**موخه**: زده‌کوونکي به وکولای شي انګور او ناک رسم او رنګه کړي.


**پوښتنه**

۱- په لاندې شکل کې کومې میوې وینئ؟






زده‌کوونکي دې د مېوو شکل او رنګ ته پاملرنه وکړي، بیا دې رسم او رنګه کړي.







زده‌کوونکي دې انګور او ناک پړاو په پړاو رسم او رنګه کړي.

# د گازرو او پیازو رسمول

موخه: زده‌کوونکي به وکولای شي پیاز او گازره رسم او رنگه کړي.



پوښتنه

۱- په لاندې شکل کې کوم سابه وینئ؟






**زده کوونکي دې (۱-۲) شکل ته په کتو سره سابه رسم او رنګه کړي.**



۱



۲




**زده کوونکي دې سابه په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړي.**

# د انار او مڼې رسمول

**موخه**: زده‌کوونکي به د انار او مڼې رسمول زده‌کړي.



**پوښتنه**

۱- کله مو انار او مڼه رسم او رنګه کړې دي؟






**لاندېنیو شکلونو ته په ژورې پاملرنې سره، هغه رسم او رنګه کړئ.**



۱



۲




**انار او مڼه په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړئ.**

# د کوترې رسمول

**موخه**: زده‌کوونکي به وکولای شي کوتره رسم او رنګه کړي.



**پوښتنه**

۱- په لاندې انځور کې کوم الوتونکی وینئ؟



۳




**زده کوونکي دې انځورونو ته وګوري، بیا دې هغه په کتابچو کې رسم او رنګه کړي.**



۱



۲




**کوتره په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړئ.**

# د طوطي رسمول

**موخه**: زده‌کوونکي به وکولای شي، طوطي رسم او رنګه کړي.



**پوښتنه**

۱- تاسو طوطي لیدلی دی؟






**زده‌کوونکي دې لاندې انځور په کتابچو کې پړاو په پړاو رسم کړي.**






**طوطي په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړئ.**

# د کور رسمول

**موخه**: زده‌کوونکي به وکولای شي کور رسم او رنگه کړي.



**پوښتنه**

۱- آیا تاسو تراوسه کور رسم کړی دی؟






**لاندې انځور ته په پاملرنې سره هغه په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړئ.**



۱



۲




**هر زده‌کوونکی دې سیوري او رڼا ته په پاملرنې سره خپل کور رسم کړي.**

# د پنجې او کاچوغې رسمول

**موخه:** زده‌کوونکي به وکولای شي کاچوغه او پنجه رسم او رنګه کړي.



**پوښتنه**

۱ - آیا تاسو تراوسه کاچوغه او پنجه رسم کړي دي؟






**لاندې انځور د رسمولو پړاوونو ته په کتو سره، هغه په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړئ.**







**د کاچوغې او پنجې انځورونو ته په کتو، هغه پړاو په پړاو رسم او رنګه کړئ.**

# د توپ رسمول

موخه: زده‌کوونکي به وکولای شي چې توپ رسم او رنګه کړي.



پوښتنه

۱- په لاندې انځور کې څه وینئ؟






**د توپ د رسمولو پړاوونو ته په کتو سره هغه په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړئ.**


۱


۲




**د توپ د (۱ - ۲) انځور پړاوونو ته په کتو سره رسم او رنګه کړئ.**

# له کاغذ څخه د ګل جوړول

موخه: زده‌کوونکي به وکولای شي چې له کاغذ څخه ګل جوړ کړي.



پوښتنه

۱- کله مو له کاغذ څخه کوم شکل جوړ کړی دی؟








**له کاغذ، سرېښ، رنګه پنسلونو او بیاتي ښخه په ګټې اخیستنې سره لاندې شکلونه جوړ او رنګه کړئ.**


١


٢


٣




**له کاغذ، سرېښ، رنګه پنسلونو او بیاتي ښخه په ګټې اخیستنې سره یو ګل او یا له خپلې خوښې سره سم یو شکل جوړ او بیا یې رنګه کړئ.**

# د سمارق (مرخېړي) رسمول

موخه: زده‌کوونکي به وکولای شي مرخېړی رسم او بیا یې رنګه کړي.



پوښتنه

۱- آیا تاسې پوهېږئ چې لاندې شکل د څه شي دی؟






د مرخېړي د رسمولو پړاوونو ته په کتو سره هغه په خپلو کتابچو کې رسم او بیا یې رنګه کړئ.







د مرخېړي د رسمولو پړاوونو ته په کتو سره هغه په خپلو کتابچو کې رسم او بیایې رنګه کړئ.

# د ساعت رسمول

موخه: زده‌کوونکي به وکولای شي، ساعت رسم او رنگه کړي.



پوښتنه

۱- په لاندې انځور کې څه وینئ؟






**لاندې انځور ته ژوره پاملرنه وکړئ، بيايې پړاو په پړاو په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړئ.**


۱


۲




**په خپلو کتابچو کې ساعت رسم او رنګه کړئ.**

# د غنمو د وږي رسمول

موخه: زده کوونکي به لاندې انځور ته په ځير سره وګوري، د هغه د رسمولو پړاوونو ته په کتو سره به يې رسم او رنګه کړي.


پوښتنه

۱- تاسو کله د غنمو وږی رسم او رنګه کړېدی؟






د (۱- ۲) انځورونو ته په پاملرنې سره د غنمو وږي په خپلو کتابچو کې رسم او بیا یې رنګه کړئ.







زده‌کوونکي دې له خپلې خوښې سره سم د غنمو وږي رسم او رنګه کړي.

# د کاسې او بشقاب رسمول

موخه: زده‌کوونکي به بشقاب او کاسه رسم او رنګه کړي.


پوښتنه

۱- تاسې لاندې انځورونه پېژنئ چې د څه شي انځورونه دي؟








د کاسې او بشقاب انځورونه ژور وګورئ، هغو ته په کتو سره له (۱-۲) انځورونو سره سم یې په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړئ.



۱



۲




بشقاب، کاسه په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړئ.

# د ګلدان رسمول

موخه: زده‌کوونکي به وکولای شي، ګلدان رسم او رنګه کړي.



پوښتنه

۱- په لاندې انځور کې څه وینئ؟






**د (۱-۲) انځورونو پړاوونو ته په کتو سره ګلدانۍ په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړئ.**







**د ګلدان انځور په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړئ.**

# د پتنګ د انځور رسمول

موخه: زده‌کوونکي به وکولای شي پتنګ رسم او رنګه کړي.



پوښتنه

۱- په لاندې انځور کې څه وينئ؟






**لاندې انځور ته ژوره پاملرنه وکړئ، پتنګ رسم او بیا یې رنګه کړئ.**






**یو کاغذي لاسي کار جوړ کړئ او ټولګي ته یې راوړئ.**

# د گل ډيزاين كول

موخه: زده‌کوونکي به وکولای شي چې د گل له انځور څخه په گټې اخیستنو سره هغه ډيزاين کړي.



پوښتنه

۱- کله مو د گل ډیزاین لیدلی دی؟






**د لاندې انځورونو پړاوونو ته په پاملرنې، گل ډیزاین او رنگه کړئ.**



اشکال (۱)






**د کتاب له انځورونو سره سم په خپلو کتابچو کې گل رسم کړئ.**

# د صراحي رسمول

موخه: زده‌کوونکي به وکولای شي چې صراحي رسم او رنګه کړي.



**پوښتنه**

۱- کله مو صراحي ليدلې ده؟






**د لاندې انځورونو پراوونو ته په کتو سره هغه په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړئ.**



۲



۱




**د صراحي انځور په خپلو کتابچو کې رسم او بیایې رنګه کړئ.**

# د کب رسمول

موخه: د لاندې انځور پړاوونو ته په کتو سره، هغه په کتابچو کې رسم او بيا يې رنګه کړئ.



**پوښتنه**

۱- په لاندې شکل کې کوم شی وينئ؟






**لاندې انځور ته په کتو سره کب رسم او بیایې رنګه کړئ.**



۱



۲




**کب په خپلو کتابچو کې رسم او بیایې رنګه کړئ.**

# د ټوپۍ (خولۍ) رسمول

موخه: زده‌کوونکي به وکولای شي خولۍ رسم او رنګه کړي.



پوښتنه

۱- آیا تر اوسه موکومه خولۍ رسم کړې ده؟



۲




لاندې انځورته په پاملرنې سره خولۍ پړاو په پړاو رسم او بیایې رنګه کړئ.



۱




کومه خولۍ مو چې خوښیږي، هغه رسم او بیایې رنګه کړئ.

# د چترۍ رسمول

موخه: زده‌کوونکي به د چترۍ د رسمولو او رنګولو وړتیا پیدا کړي.



پوښتنه

۱- په لاندې انځور کې څه وینئ؟ او له هغې څخه کومې ګټې اخیستل کېږي؟



۳




د چترۍ د رسمولو پړاوونو ته په پاملرنې، هغه په کتابچو کې رسم او بیا یې رنګه کړئ.

۱

۲




په خپلو کتابچو کې چترۍ رسم او بیا یې رنګه کړئ.

# د شمعې رسمول

موخه: زده‌کوونکي به وکولای شي شمع رسم او بیا یې رنګه کړي.


پوښتنه

۱- کله مو شمع رسم کړې ده؟






د شمعې د رسمولو پړاوونو ته په پاملرنې سره، هغه په خپلو کتابچو کې رسم او بیا یې رنګه کړئ.







په خپلو کتابچو کې شمع رسم او بیا یې رنګه کړئ.

# ټاپه

موخه: زده‌کوونکي به وکولای شي له ګازرې څخه په ګټې اخیستنې سره ټاپه کاري وکړي.


پوښتنه

۱- کله مو له ګازرې څخه په ټاپه کولو کې استفاده کړې ده؟






د لاندې انځور سره سم له ګازرې ټاپه جوړه او د هغې په واسطه ټاپه کاري وکړئ.



۱




د خپلې کتابچې یو مخ د ګازرې د ټاپې په واسطه ښکلې او ډیزاین کړئ.

# د الوتکې رسمول

**موخه**: زده‌کوونکي به وکولای شي الوتکه رسم او بیایې رنګه کړي.



**پوښتنه**

۱- کله مو الوتکه رسم کړې ده؟






د الوتکې د رسمولو پړاوونو ته په پاملرنې سره، هغه په خپلو کتابچو کې رسم او بیا یې رنګه کړئ.

۱

۲

په خپلو کتابچو کې الوتکه رسم او بیا یې رنګه کړئ.

# د رنګونو ترکیب

موخه: زده کوونکي به وکولای شي درې رنګونه سره ګډ او یو نوی رنګ ترې جوړ کړي.


پوښتنې

۱- په لاندې انځور کې څه شی وینئ؟

  

 +  = 

 +  = 

 +  = 




زده‌کوونکي دې اصلي رنګونه سره يو ځای او ګډ کړي او له لاندې انځور سره سم دې نوي رنګونه جوړ کړي.







درې اصلي رنګونه له خپلې خوښې سره سم ګډ او نوی رنګ ترې جوړ کړئ.

# د چرگوړي رسمول

موخه: زده‌کوونکي به وکولای شي چرگوړی رسم او بیا یې رنګه کړي.



پوښتنه

۱- په لاندې انځور کې څه شی وینئ؟






**زده کوونکي دې د لاندې انځور د رسمولو پړاوونو ته ژوره پاملرنه وکړي چرګوړی دې رسم او بیا دې رنګ کړي.**



۱



۲




**د چرګوړي د رسمولو پړاوونو ته په کتو سره، چرګوړی په کتابچو کې رسم او بیایې رنګه کړئ.**

# د موټر رسمول

**موخه**: زده‌کوونکي به وکولای شي، موټر رسم او رنګه کړي.



**پوښتنه**

**۱- کله مو د موټر انځور ایستلی دی؟**






**زده‌کوونکي دې د لاندې انځور پړاوونو ته پاملرنه وکړي، هغه دې په خپلو کتابچو کې رسم او رنګه کړي.**



۱



۲




**له خپلې خوښې سره سم يو موټر په کتابچو کې رسم او بيا يې رنګه کړئ.**

## د رسامۍ هنر د تدریس لارښود

**لومړی لوست(۱) مخ**

**د تدریس وخت یو درسي ساعت**

**لومړی درسي ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **د لوست سرلیک** | **گل** | |
| **عمومي موخه** | **د گل انځور له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتیا.** | |
| **(پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې** | - له زده کوونکو هیله کیږي چې د دې لوست په پای کې لاندې موخې ترلاسه کړي.<br>- زده کوونکي به د یوه انځور له رسمولو سره بلد شي.<br>- یو شکل به د پنسل په واسطه رسم وکړای شي.<br>- د پنسل په واسطه د یوه شکل له رسمولو سره به یې مینه پیدا شي. | |
| **د لوست مرستندویه توکي.** | کتاب، کتابچه، قلم، پنسل، پنسل پاک، تباشیر، برس، د رنگ قطی، د اوبو لوښې. | |
| **د ارزونې لارې** | مشاهدوي او عملي | |
| **د تدریس لارې** | ډله ییز او ځانگړي فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه | |
| **لومړني یا مقدماتي فعالیتونه** | سلام اچول، د لنډ احوال پوښتنه، د نوي کال مبارکي، د ټولگي تنظیم، حاضرۍ اخیستل، او د دویم ټولگي د رسامۍ هنر د لوستونو یادونه. | ۵ |
| | **د انگیزې پارول**<br>**پوښتنه:**<br>- آیا کله مو گل رسم کړی دی؟ | ۵ |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - د تختې پر مخ گل رسم، د هغې د رسم د پړاوونو په اړوند زده‌کوونکو ته معلومات ورکړئ.<br>د رسم د وروستي پړاو د رنگونو په اړوند زده‌کوونکو ته معلومات ورکړئ.<br>د زده‌کوونکو کارونه وڅارئ.<br>د زده‌کوونکو کارونه و ارزوئ، د دوی د زیاتې هڅونې په موخه یې رسمونه پر دیوال وځړوئ. | - زده‌کوونکي د ښوونکي لارښوونو ته ژوره پاملرنه کوي، هڅه کوي چې هغه عملي کړي.<br>زده‌کوونکي نوی انځور په خپلو کتابچو کې د تختې له مخې رسموي.<br>د رسم وروستۍ مرحله د ښوونکي په مرسته بشپړوي.<br>زده‌کوونکي خپل نظافت ته پاملرنه کوي، خپل لاسونه او جامې له رنگولو ساتي. | ۳۵<br>دقیقه |

**ارزونه**: د خپل ډاډ تر لاسه کولو لپاره چې زده‌کوونکو لوست زده‌کړی او یا نه، د ځو پوښتنو په کولو یې وارزوئ.

**کورنۍ دنده**: زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د درسي کتاب له مخې رسم پړاو په پړاو تمرین کړي.

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

ماشومان له خپل عمر سره سم په لومړۍ دوره (۱- ۳) ټولگیو پورې مینه لري چې د رسمولو له لارې، رنگول او د لاسي کارونو تر سره کول، د سیمې له ساده موادو، لکه: گلان، لرگي او ډول ډول کاغذونو څخه هغه شیان جوړ کړي چې د دوی په فکر او ذهن کې وي او نورو ته یې ښکاره کړي. د لومړۍ دورې ښوونکو ته پوره پوره پته ده چې زده‌کوونکي په دې دوره کې له ۱۵ څخه ۳۰ دقیقو پورې په ډېره مینه رسمونه باسي، خو له دې زیات یې مینه کمیږي، په دې صورت کې له دې زیات د هنري کارونو دوام ورته گټه نه لري، بلکې ځینې وختونه ورته زیان رسوي.

د (۷- ۹) کالو په عمر ماشومان ډېر وخت له ځان سره بوخت وي، په دې معنا چې ټول شیان له خپلې خوښې سره سم غواړي او تر سره کوي یې، له هغه کاره چې ورته ټاکل کیږي، که چیرې د ماشوم، د ماشوم د کورنۍ له ژوند او سیمې سره تړاو ولري، په دې وخت کې یې ماشومان په پوره مینه ترسره کوي چې زده‌کړه په چټکۍ تر سره کیږي.

## د رسامۍ هنر د تدریس لارښود

**دویم لوست(۳) مخ**

**د تدریس وخت یو درسي ساعت**

**لومړی درسي ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **د لوست سرلیک** | **آلوبالو** | |
| **عمومي موخې** | **په پنسل د آلوبالو له رسمولو سره د زده‌کوونکو بلدتیا** | |
| **(پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې** | - له زده‌کوونکو هیله کیږي چې د دې لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- زده‌کوونکي به د آلوبالو له رسمولو سره بلدشي.<br>- یو شکل به رسم کړای شي.<br>- د یوه شکل له رسمولو سره به مینه پیدا کړي. | |
| **د تدریس لارې** | ډله ییز او ځانګړي فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه | |
| **دلوست اړین توکي:** | کتاب، کتابچه، قلم، پنسل، پنسل پاک، تباشیر، برس، د رنګ قطۍ، د اوبو لوښی. | |
| **د ارزونې لارې** | مشاهدوي او عملي | |
| **لومړني یا مقدماتي فعالیتونه** | سلام اچول، د لنډ احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، حاضري اخیستل، دکورنۍ دندې کتنه، د تېر لوست یادونه او له نوي لوست سره یې ارتباط ورکول. | **۵** |
| | **د انګیزې پارول**<br>**پوښتنه:**<br>- آیا تا سو کله آلوبالو رسم کړی دی؟ | **۵** |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| پر تختې آکوبالو رسم او د رسمولو د پړاوونو په اړوند زده‌کوونکوته معلومات ورکړئ.<br>- د رسمولو د وروستي پړاو او رنګونو په اړه معلومات ورکړئ.<br>- د زده‌کوونکو کارونه و ارزوئ د دوی د هڅونې لپاره رسمونه پر دیوال و ځړوئ. | - زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره هڅه کوي چې هغه عملي کړي.<br>- زده‌کوونکي د تختې له مخې رسم په خپلو کتابچو کې وباسي.<br>- د کار کولو پر وخت نظافت ته پاملرنه کوي، لاسونه او کالي نه رنګوي. | ۳۵<br>دقیقه |

**ارزونه**: د خپل ډاډ د ترلاسه کولو لپاره چې زده‌کوونکو لوست زده‌کړی او یانه، له زده‌کوونکو څخه ځوابونه وکړئ، هغوی، وارزوئ.

**کورنۍ دنده**:زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې پر او په پړاو د درسي کتاب له مخې یو شکل رسم کړي.

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

۱- ماشومان رسمولو او د لاسي کارونو جوړولو ته وهڅوئ، هڅه وکړئ چې ځینې هنري فکرونه او اندیښنې پکې تحریک شي.

۲- ځینو تفریحي کارونو، لکه: سیر علمي، کتابتونونو ته تګ، د کیسو ویلو او نورو پواسطه په دوی کې انګیزې را پیدا کړئ.

۳- کله چې ماشومان تیارشول، هغوی پریږدئ چې ژر ژر هنري کارونه پیل کړي.

٤-په ابتکاري یا نوښتګرو فعالیتونو کې د نورو مضمونونو له موضوعاګانو څخه ګټه واخلي.

٥- په ټولګي کې د دوی د فکر او مفکورې د پراختیا لپاره له خبرو اترو څخه کار واخلئ.

٦- هغوی بوخت وساتئ، په مقابل کې هغه ستونزې چې د دوی د کار په وړاندې خنډونه جوړوي له مخې یې لرې کړئ.

۷- له ستونزو او مشکلاتو څخه یې خبر واوسئ، داسې شرایط رامنځ ته کړئ چې د دوی د پر مختګ سبب شي.

## د رسامۍ هنر د تدریس لارښود

**دریم لوست(۵) مخ**

**د تدریس وخت یو درسي ساعت**

**دویم درسي ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| **د لوست سرلیک** | **کتاب** | |
| **عمومي موخې** | **د کتاب له رسمولو او رنګولو سره د زده کوونکو بلدتیا** | |
| **(پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې)** | -له زده کوونکو هیله کېږي چې د دې لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>- زده کوونکي به له رسمولو او رنګولو سره بلد شي.<br>یو انځور به رسم او رنګ کړای شي.<br>- له رسامي او رنګولو سره به یې مینه او علاقه پیدا شي. | |
| **د تدریس لارې** | ډله ییز او ځانګړې فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه | |
| **د لوست اړین توکي** | کتاب، کتابچه، قلم، پنسل، پنسل پاک، تباشیر، برس، د رنګ قطۍ، د اوبو لوښې. | |
| **د ارزونې لارې** | مشاهدوي او عملي | |
| **لومړني یا مقدماتي فعالیتونه** | سلام اچول، د لنډ احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، حاضري اخیستل، د کورنی دندې کتنه، د تېر لوست یا دونه او له نوي لوست سره یې ارتباط ورکول. | ۵ |
| | **د انګیزې پارول**<br>**پوښتنه:**<br>- آیا تاسو کله کتاب رسم کړی او رنګه کړی دی؟ | ۵ |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - د تختې پر مخ ګل رسم، د هغې د رسم د پړاوو په اړوند زده‌کوونکو ته معلومات ورکړئ. د رسمولو د وروستي پړاو او رنګونو په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکړئ. - د ټولو زده‌کوونکو د کارونو څارنه وکړئ. - د زده‌کوونکو کارونه وارزوئ او د دوی د هڅونې په موخه یې رسمونه پر دیوال وځړوئ. | - زده‌کوونکي د ښوونکي لارښوونو ته ژور ه پاملرنه کوي، هڅه کوي چې هغه عملي کړي. زده‌کوونکي نوی انځور په خپلو کتابچو کې د تختې له مخې رسموي. د رسم وروستۍ مرحله د ښوونکي په مرسته رنګوي. د رسم کولو پر وخت خپل نظافت ته پاملرنه کوي چې کالي او لاسونه یې رنګ نه شي. | ۳۵ دقیقه |

**ارزونه**: د خپل ډاډ د ترلاسه کولو لپاره چې زده‌کوونکو لوست زده‌کړی او یا نه، د څو پوښتنو په کولو یې وارزوئ.

**کورنۍ دنده**: زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د کتاب له مخې رسمونه پړاو په پړاو رسم او رنګه کړي.

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

په دې عمر کې زده‌کوونکي په چټکۍ سره غواړي چې د خپل کار نتیجه ووینې، له دې امله باید داسې فعالیت ورته غوره شي چې په لږ وخت کې ترسره کېږي.

هغه ماشوم چې له (۷ - ۹) کالو پورې عمر لري، له بېلا بېلو رنګونو سره ډېره مینه پیدا کوي. هغوی پرېږدئ چې له خپلې خوښې سره رسمونه رنګ کړي، باید یادونه وکړو چې ماشومان په لویو غړو حاکمیت لري، خو پر وړو غړو په ځانګړې ډول پر ګوتو سم کنټرول نه لري، له دې امله د ډېرو ظریفو انځورونو د رسمولو او رنګولو له عهدې څخه نه شي وتلی، ځکه چې د ښکلا خوښونې حس د دې عمر په ماشومانو کې رشد نه دی کړی، باید ښوونکی تل دا حقیقت په پام کې ولري چې د یوه ظریفه او ښکلي رسم هیله ورڅخه ونه لري، د ماشومانو له مور- پلار څخه زموږ هیله دا ده چې د خپلو ماشومانو لپاره لاسي کارونه له بازار څخه وانخلي، همدارنګه هیڅکله یې مشرې خور او مشر ورور ته اجازه ور نه کړئ چې وړو ماشومانو ته کار دستي جوړ کړي، په دې صورت کې ماشومان د نورو په تمه کېږي او خپل باور له لاسه ورکوي، بیکاره کېږي او د ابتکار د عمل قوه له لاسه ورکوي.

**ښاغلی ښوونکیه**! په دې کتاب کې مو د تدریس د لارښود له بیا لیکنو څخه ډډه کړېده. تاسې کولی شئ چې له دې لارښود څخه د ټولو لوستونو په تدریس کې ګټه واخلئ.

## گرانو زده کوونکو!

ستاسې تعلیمي کال پای ته ورسید. په دې کال کې تاسې ډېرشیان زده کړل اوس چې د ژمي د رخصتي پیل دی او د څلورم ټولګي کتابونه د ښوونځي د اداري له خوا درکړل شویدي، په غور او دقت ولولي، ترڅو په څلورم ټولګي کې تاسې له مشکلاتو او ستونزو سره مخامخ نه شئ. د دې کتابونو په لوستلو به تاسې ډېرې بریاوې ترلاسه کړئ.

تاسې ته د ژمي رخصتي ډېره مناسبه موقع ده؛ ځکه چې تاسې کولای شئ د خپلو عملي او نظري مهارتونو سطحه لوړه کړئ. کولی شئ چې ښکلي منظرې او ډېر ښایسته ځایونه وګورئ او هغه په خپل ذهن کې وساتئ او په خپل کور کې یې په انځورولو پیل وکړئ چې دا کار به له تاسې سره په عملي مهارتونو کې مرسته وکړي.

ستاسې بریا تل زموږ هیله ده



د هرات جامع جوما ت



په قندهار کې د میرویس نیکه مقبره



په کابل ښار کې د دارالامان تاریخي ماڼۍ



د افغانستان د ښکلي طبیعت انځور